



# کندهار



اعلیحضرت معظم همایونی دافغانستان محبوب
ټولواك او داستقلال ساتندوی

# معظم ټولواک همایوني اعلیحضرت د مرحوم

علامه استاد سلجوقي پاتې کسانو ته تسلیت فرمایلی او شاهانه مهرباني ئې ورکړه

..........................................

معظم ټولواک همایوني اعلیحضرت د جوزا په ۱۸ نېټه د ماښام په شپږ نیمو بجو د علامه استاد سلجوقي کورته تشریف فرماشو! او د هغه مرحوم پاتې کسانو ته یې تسلیت وفرمایه او په هغوی یې شاهانه مهرباني وکړه په مقابل کې سناتوري حمیرا سلجوقي د هغه مرحوم د کورنۍ په نمایندګۍ د همایوني ذات د مراحمو او مهربانیو څخه سپاس ګذاري وکړه .

د مور د ورځې په مناسبت

## د علیاحضرتې معظمې ملکې د پیغام متن

بسم الله الرحمن الرحیم

ګرانو وطنوالو:

خوشحاله یم چې د دغې مبارکې ورځې له امله میندو او ټولو ګرانو وطنوالو ته مبارکي وایم.

د مور د مقام د احترام په غرض د خاصو مراسمو په ځای کول چه د اسلام د مقدسو تعلیمونو او زموږ ملي سپېڅلي ارکانو او مهمو سننو څخه سرچینه نیسي په حقیقت کښې یې د ملي ثقافت د یوې عنعنوي ښه غوره کړې ده.

په ټولنه کښې د مور د مثبت نقش اجرا کېدل د کورنۍ په قانون او بنسټ کښې د محور په حیث او د بشري ټولنو او د بشریت د عام د نیکمرغۍ او بریالیتوب په پیدا کولو کښې د بشر د افرادو د لوړ زړونی او ډېر اغېزه ناک لارښوونکی په حیث زښت زیات ارځښت لري له همدې کبله د دغو مراسمو په ځای کول ځینې وجائب او وظیفې هم منځ ته راوړي.

د مور د ورځې نمانځل په عین حال کښې میندې د دوی د وظیفو حساسیت او اهمیت ته متوجه کوي له بلې خوا د میندو د وظیفې د بریالي او اغېزه ناک ټول سرته رسېدو په لار کښې د میندو له پاره د برابرې زمینې د منځ ته راوستلو له لارې د مور مقام په رښتیاني ټول نمانځل کېدای شي.

زموږ ټولو ملي او انساني وظیفه ده چه د نن ورځې او د راتلونکي وخت د میندو په معنوي، ذهني او تعلیمي وده او د دوی د حالت په ښه کېدلو کې کوښښ وکړو، ځکه هغه میندې چه له دغو ښېګڼو په تیره بیا له پوهنې او د ښوونې او روزنې او د کورنۍ په کانون کښې په زړه پورې فضا په منځ ته راوستلو کښې به ښې بریالۍ وي

په دې وسیله د وطن د اولاد د فردي او اجتماعي سرنوشت په مثبت تنظیم کښې د میندو له ټول نقش او د دوی ورځینې او سپېڅلي ایثار څخه د خپلې خوشحالۍ مراتب څرګندوم او له لوی خدای څخه هیله لرم چه ټولو میندو ته د دوی د ملي او بشري سترو وظیفو اجرا کولو کښې ډېر توفیق ورکړي

«د مور د ورځې په مناسبت او د تفصیل ئې په ۱۶ مخ کښې»

# د جوزا شپږمه

نېټه

د نړۍ ولسونه د خپل ژوند په تاریخ کښې ښه ورځې لري کومې ورځې چې د دوی د افتخار موجب وي هغه همېشه هر کال په هم هغه نېټه نمانځي او د نعمت د شکر دادېنې په نامه ئې د خوښۍ اظهار په خاصو مراسمو سره کوي.

افغان ولس هم په خپل تاریخ کې داسې څو ورځې لري چې هر کال ئې آلمین نیسي او په ویاړي.

همدغه د جوزا شپږمه نېټه هغه ورځ ده چې موږ د یوه متقدر استعماري قدرت او قوت په مقابل کښې د مقابلې جنګ بوږته کړی وه او په دغه ورځ مو پدوی ومنله چې د دې خاورې آزاد مشر به ولس د شرافت مرګ ته ترجیح ورکوي نه دا چې د اجنبي خلکو تسلط ته غاړه کښېږدي

کوم ټکي چې د لنه دو یادونې او قدر وړ دي هغه دادي چې افغان ولس په ډېر لږ وس او خوړا کم

د سرمقالې پاته برخه د پښتنی په دریم مخ کې



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی [رح]
زموږ د هیواد د خپلواکۍ ګټندوی او د وطن ناجی

د کابل فاتح والاحضرت مارشال شاولی خان
غازی چی دخپلواکی دبیرته گټلو په معرکه
کی ئی نه هیریدونکی خدمتونه کړیدی

مرحوم والاحضرت سپهسالار غازی سردار
شاه محمود خان دپیوار فاتح

دامتیاز خاوند : دطلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار
میاشتنی خپرونه
تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي
اداره: دشهیدانو واټ
دتاسیس کال ۱۳۳۹
دیوولسم کال دریمه ګڼه
پرله پسې ګڼه ۱۱۷

کالنی بیه
په کندهار کی [۲۸] افغانیه
دهیواد په داخل کی [۳۲] د
په دباندنیوهیوادو کی یو ډالر

دغبرګولی میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

## ددې ګڼې مضامین



دکندهار دولتی مطبعه

# د ښار د نوي پلان له مخه په کندهار کې

یو پوهنتون جوړېږي



کندهار چې د هیواد یوه اقتصادي سیمه مهم تجارتي مرکز او تاریخي ولایت دی د هغه تاریخي عظمت بیا راژوندی کېږي او حکومت په نظر کې لري چې په شلو راتلونکو کلونو کې د یوه پراخ انکشافي پلان له مخه د نفوسو د زیاتېدو په حال کې نوي عرفاني، کلتوري، صحي، تجارتي، صنعتي او عمراني تاسیسات یکښې جوړ او داسې فعالیتونه په کار واچوي چې د دغه ولایت په عصري لحاظ د هره حیثه پر مخ ولاړ شي څو چې کندهاریان د نورو ولایتونو د اوسېدونکو په څېر د هیواد په پرمختګ، آبادۍ او نېکمرغۍ کې پوره برخه ولري او په دغه لار کې د پخوانه زیات او مؤثر خدمت وکولای شي.

اوس هم د هیواد د دغه مهم ولایت د انکشافي پلانونو د تطبیق په برکت د پخوانه پر مخ تللی دی په ښار کې عمراني تاسیسات زیات شوي علمي مؤسسو پراختیا موندلې د څښلو د اوبو شبکه یکښې غځول شوې مخابراتي شبکې عصري رنګ غوره کړی صنعتي او زراعتي فعالیتونه مخ په انکشاف دي خو ځکه چې د دغه ولایت نفوس ورځ په ورځ زیاتیږي نو د نورو فعالیتونو او نویو تاسیساتو د منځ ته راوستلو په لړ کې په نظر کې دي چې یو پوهنتون هم یکښې جوړ او د دغې سیمې نژدې ولایتونو ځوانانو او هلکانو ته د عالي تحصیلاتو زمینه مساعده شي.

کندهار د هیواد د نورو لویو ولایتونو په څېر د هر ډول انکشاف د پاره پوره استعداد لري نو ځکه چې دلته د نفوسو زیاتوالی او کندهار ته مهاجرتونه محسوس دي او دغه حالت د ژوندانه په هر اړخ کې نوي تاسیسات ایجابوي نو د عصر دغو غوښتنو ته مثبت جواب ورکول او د خو آینده پنځکلنو پلانونو په موده کې د دغه ولایت د چارو پرمختیا ول د هیواد په سالم انکشاف او پرمختګ باندې ګټوره اغیزه کوي او له دغه درکه د هیواد اجتماعي او اقتصادي حالت زیات پیاوړی کیږي.

د یوې ټولنې د پرمختګ او د ژوندانه د سمون له پاره لومړی شرط عصري پوهنه او مثبته روزنه ده او ترڅو پورې چې انسانان د علم له مخه ونه روزل شي، علمي او معنوي سویه یې جګه نه شي، د سمې روزنې او مدني تهذیب خاوندان نشي او لدغې لارې څخه خپل انساني مکلفیتونه او ملي وجایب ونه پېژني هغه کسان د پرمختګ او نېکمرغۍ مخ نشي کتلای.

دغه سبب دی چې نن حکومتونه د خپلو خلکو د علمي سویې او عصري روزنې د پرمختیا لو له پاره په کلکه زیار باسي او زموږ په هیواد کې هم په دغه لار کې د نورو انکشافاتو په جمله کې ډېر کوښښ او فعالیت کیږي څو چې ځوانان او پېغلې د علم او اخلاقو په وسیله مجهز او د هیواد او ټولنې خدمت ته د هره حیثه مساعد او چمتو وي او د هیواد د لوړتیا او نېکمرغه کولو تر عهده په ښه توګه ووتلای شي.

په کندهار کې د عملي امکاناتو په نظر کې نیولو سره د نورو انکشافاتو تر څنګ د پوهنتون جوړول او په کار اچول د دولت یو ګټور او مهم اقدام دی چې پدې ډول زموږ د ولایت خپل باستاني عظمت بیا راژوندی او د هیواد د نورو

[پاته په دوهم مخ کې]

د اول مخ پاته

دښار د نوي پلان له مخه .

لویو ولایتونو په قطار کې خپل موقعیت نیولی شي . زموږ علمدوسته خلکو ته دغه خبر یو په زړه پورې زیری دی او د حکومت دا ټول ګټور اقدامات نه یوازې د هیواد د دغې مهمې سیمې د راتلونکي حالت د ښوونې بلکه د هیواد د نوي ژوند په تنظیم او منځ ته راتلو کې مرسته کوي او زموږ هیوادوال ډاډه کوي چې په نورو لویو ولایتونو کې هم د عالي تحصیلاتو او پوهنتون د پرانیستلو او جوړیدلو زمینه مساعده ګرزي .

په کندهار کې د پوهنتون په جوړولو سره د دغې سیمې یوه ستره آرزو ترسره کیږي او په دې توګه د ژوند د لویدلو او ټولو انکشافاتو او د چارو د پرمختګ مفکوره تحقق مومي او په دغه راز حالت کې زموږ د دغې سیمې د بشري قوا او ستر طاقت څخه د کندهار او هیواد په لوړولو او هوسایینه کې پوره کار اخیستل کیږي .

(حافظي ایوبي)

لیکوونکی م [عطائي]

پر ادبیاتو کره کتنه

# اصالت وجودی

## د اګزستانسیالسم په شیوه ادبیات

په ۱۹۶۴ کال کې یعنې شپږ کاله د مخه د فرانسې معروف ناول لیکوونکي [ژان پل سارتر] په ادبیاتو کې د [نوبل] مشهوره جایزه وګټله خو ده یې له اخیستلو څخه امتناع وکړه او هغه مهال چې یې اخبار - والاو ته د دغې امتناع علت بیا ناوه نو ویې ویل :

[اساساً زه په دې عقیده یم چې جوایز که لوی وي او که کوچني باید تشویقي جنبه ولري . کوم مبلغ چې ما ته د دغې جایزې له درکه منظور دی هغه ډېر پیسې دي خو څرنګه چې زه یو [اګزستانسیالیست] یم نو د دغې فلسفي پیروي له مادي لذت څخه فارغه کړی یم او دا علت دی چې ما د [نوبل] د جایزې څخه معافي وغوښته نه خبره خو دا ده چې د نوبل جایزه د هغو لیکوالو له پاره تخصیص شي چې د لیکوالۍ په دنیا کې تازه قدم وهي او په دې کوم اثر چې ښاغلي (سارتر) ته پر هغه د نوبل جایزه منظور سوې ده [کلمات] نومیږي [کلمات] د لوېدیځې نړۍ د یو داسې ادبي روش په پیروۍ لیکل شوی و چې هغه [ژوند یو ناتمامه اضطراب] بولي .

تر دوهمې عمومي جګړې وروسته اروپایي تفکر د یو اضطراب سره مخامخ ؤ او د دې علل هم د هغې جګړې په تباهیو کې مضمر و چې پنځه کاله یې پر له پسې پر انساني هستۍ یو ه بې رحمه قصابي عملاً تطبیق کړه .

دې عمومي جګړې اودا روپا اجتماعي نابسامانۍ انساني طبیعت په عین تمدن کې وحشي کړ .

څو دا ؤ چې په فلسفي تفکر یې دیو فلسفي لیونتوب درواززه خلاصه کړه او د دې سوال له پاره چې ژوند څه شی ؟ او د هغه درک څرنګه کیږي ؟ یو ډول متفکرینو په خاصه شیوه جواب ورایه چې :

[ژوند اضطراب دی ! او د هغه درک بې حاصله عامل دی] .

هغو کسانو چې د دې فلسفې مشي پیروي کوله څانونه یې [اګزستانسیالستان] او خپل لین یې [اګزستانسیالسم] وباله چې په ختیځه علمي اصطلاح کې په [اصالت وجودی] ترجمه کیږي .

[اوړي ۸ مخ کې]

# د مرحوم استاد صلاح الدین سلجوقي مړینه یوه لویه علمي او ادبي ضایعه ده

نامتو شاعر او مشهور پیاوړی پوه استاد صلاح الدین سلجوقي چې د هیواد یو صادق او سابقه لرونکی خدمتګار و د جوزا په ۱۶ نیټه د شپې په دوه نیمو بجو د زړه د دریدو په اثر وفات شو

استاد صلاح الدین سلجوقي د پنځه پنځوس کاله مطبوعاتي، علمي او فرهنګي خدمتونو په موده کښې په الهیاتو، د اسلام د فلسفې، د فلسفې د تاریخ اخلاقیاتو او ادبیاتو کښې قیمت لرونکي آثار تالیف تدوین او ترجمه کړیدي چه استاد زموږ د عصر په علمي او فرهنګي ټولنو کښې ژوندی ساتي، استاد سلجوقي په هیواد کښې دننه او له هیواد څخه د باندې زموږ د عصر د یوه نامتو عالم په حیث پیژندل شویدی.

صدر اعظم ښاغلی نوراحمد اعتمادي د استاد صلاح الدین سلجوقي د وفات په خبر ډیره خواشیني ښکاره کړه او وویل مرحوم استاد څرنګه چې د یو عالم، لیکوال او ادیب په حیث د هیواد له برجسته شخصیتونو څخه و د دولت د یوه خدمتګار په حیث یې په خپلو وظیفو کې د ښوونکي په حیث د خپلې تصدۍ په وخت کښې او د اداري وظیفو او مطبوعاتي او سیاسي چارو په تصدۍ کښې ارزښت لرونکي خدمتونه د هیواد له پاره کړیدي او د استاد وفات یې یوه نه جبیره کیدونکې ضایعه وبلله.

د اطلاعاتو او کلتور وزیر دکتور محمود حبیبي په هغه مرکه کښې چې د راډیو افغانستان له راپورتر سره یې وکړه د هیواد د نامتو پوه او ادیب استاد سلجوقي وفات یوه لویه ضایعه وبلله چې د ادب نړۍ او د مطبوعاتو او کلتور عالم ته رسیدلې ده.

دکتور حبیبي د هغه وزارت د وزیر په حیث چې مرحوم استاد د مطبوعاتو د لومړني مستقل رئیس په حیث د هغه ریاست د بنسټ په ایښودلو، تاسیس او انکشاف کښې لویه او نه هیریدونکې برخه اخیستې ده د مطبوعاتو او افغانستان اکاډمۍ د منسوبینو او د هغه وزارت د مربوطو د نورو د قلم د خاوندانو په نمایندګۍ له دغه نه جبیره کیدونکي فقدان څخه ډیره خواشیني او تالم کړی او د هغه مرحوم ډیر ته پاتې کسانو ته یې د لوی خدای (ج) له دربار څخه صبر او تسلیت غوښتی دی.



مرحوم استاد صلاح الدین سلجوقي

د علامه استاد صلاح الدین

سلجوقي جنازه د جوزا په ۱۷ نېټه د مازيګر پر څلور نيمو بجو په دارالامان کې د دوی له کوره څخه واخيستل شوه د پل خشتي د جامع په مسجد کې د جنازې تر لمانځه وروسته په شهدای صالحين کې په احترامانه توګه وخاورو ته وسپارل شوه.

د مرحوم سلجوقي د جنازې او ښخولو په مراسمو کې د هيواد ډېرو عسکري او ملکي شخصيتونو مامورينو پېرو علما ؤ ليکوالو، مخورو او د مرحوم علاقه منداو کسانو ګډون کړی ؤ.

د دوی پېژندګلوی:

افغاني ليکوال، شاعر اديب او ډيپلومات علامه صلاح الدين سلجوقي د مرحوم سراج الدين زوی په ۱۲۷۶ لمريز کال کې د لمريز کال په حساب دري او يا کاله پخوا د هرات په ښار کې د علم او فضل په کورنۍ کې زېږېدلی دی.

نوموړی په ۱۲۹۶ لمريز کال کې د هرات د ښار د محکمې د مفتي په حيث مقرر شو او د هيواد د خپلوا کۍ له بيا لاس ته راوستلو نه وروسته کابل ته راغلی او په ۱۲۹۸ کال کې د حبيبيې په ښوونځي کې د ښوونکي په حيث مقرر شو او په هماغه کال د هرات د پوهنې د مدير او د هرات د فرياد د جريدې د سر محرر په حيث ئې وظيفه اجرا کوله.



ښا توره ميرمن حميرا سلجوقي

وروسته له هغه په ۱۳۰۰ کال کې بېرته کابل ته راغی او د پوهنې د وزارت په دارالتاليف کې ئې د تصحيح او په کابل دارالمعلمين کې د ښوونکي وظيفه په غاړه درلوده او هم دوه نيم کاله ئې په شاهي دارالتحرير کې د واقعو ليکلو د دريمې څانګې سر کاتب ؤ او بيا په ۱۳۰۷ کال کې د خارجه چارو د وزارت د مطبوعاتو او اطلاعاتو د مدير په حيث مقرر شو په ۱۳۰۸ کال کې د کورنۍ جګړې په وخت کې څلور نيمې مياشتې بندي ؤ او له کورنيو جګړو څخه د وطن له نجات نه وروسته په ۱۳۰۸ کال کې بيا د خارجه چارو د وزارت د مطبوعاتو او اطلاعاتو د مدير په حيث مقرر شو وروسته له هغه په بمبئي کې د افغاني جنرال قونسل په حيث وټاکل شو په ۱۳۱۵ کال کې له بمبئي نه تبديل او له ويشلو نه د مخه د هند په مرکز ډيلي کې د افغاني جنرال قونسل په حيث مقرر شو.

نوموړي استاد په ۱۳۱۸ کال کې له ډيلي څخه کابل ته راغی او د مطبوعاتو د مستقل رئيس په حيث مقرر شو د هند او پاکستان د نيمې قارې له ويشلو نه يو کال وروسته په ۱۳۲۷ کال کې په کراچي کې د افغاني لوی سفارت د مستشار په حيث د مختار وزير په رتبه وټاکل شو او په ۱۳۳۴ کال کې بيا د مطبوعاتو د مستقل رئيس په حيث او وروسته بيا د همدغه کال په پای کې په مصر کې د افغاني لوی سفير په حيث مقرر شو او د ۱۳۴۰ کال تر پايه

پوری یی همدغه وظیفه په ښه غاړه درلوده.

استاد سلجوقی خپل تحصیلات په خصوصی ډول په مدرسو کی سرته رسولی او په دینی علومو او ادبیاتو کښی ئی لوی لاس درلود او له خارجی ژبو څخه ئی په عربی او انګلیسی خبری کولای شوی او لیکل ئی هم ور باندی کړای شول او د قاهری د عربی لغت د ټولنی د غړی په حیث انتخاب شوی و.

مرحوم استاد صلاح الدین سلجوقی شوروی اتحاد، هند، ایران، عربستان، مصر او امریکی ته مسافرت کړی دی.

استاد سلجوقی د سردار عالی او لومړی درجه ستوری نښانونه اخیستی دی

تألفات:

د اخلاقو په علم باندی مقدمه دوه ټوکه په ۱۳۲۱ کال کښی د افلاطون اثر د نیکوماکوس د اخلاقو د علم ترجمه په علمی تمهید او مقدمی سره یو ټوک.

[افکار شاعر] په ۱۳۴۴ کال کی [نګاهی به زیبائی] یو ټوک په ۱۳۴۳ کال کی، د علم د سیر د تعلیمی نصاب له پاره اخلاقی مرکه.

خبر ده علم بدیع و بیان، نقد بیدل په ۱۳۴۳ کال کی (تجلی خدا در آفاق و انفس) ۱۳۴۴ کال.

د استاد ترجمی:

د ابن مسکو په تهذیب اخلاق ۱۳۴۴ کال.

[سیاست ارسطو]، محمد [ص] د رشیر خوراکی او جبیره په نومونو آثارو علاوه د علامه سلجوقی ډول ډول ترجمی او مقالی د هیواد او په خارجی مطبوعاتو کی چاپ او خپری شویدی.

د کندهار مجله: د علامه سلجوقی د مړینی له کبله د دوی کورنۍ په زیاته بیا د دوی محترمی میرمن (حمیرا سلجوقی) ته چی د هیواد فاضله او پوهه ښځه ده او هم د هیواد علمی محافلو ته د خواشینی څرګندونه په ترڅ کی د تسلیت مراتب څرګندوی او د ده ارواح ښاد له پاره د لوی او مهربان خدای څخه د هغه جهان د لوړو درجاتو التجا کوی.

د جان لاخون نتن اثر

## د سولی سندره

ډیر ژر به د جګړی تور دیوزموږ له خاوری کړی بار کړی او د دوهم ځل له پاره به د سولی ښکلی ښته زموږ په خاوره کی خپله کاله شی

ای سولی! ژر راشه د اخیستو او مغرور سر بازان چی زما میړی په غلا وړی او ښخین ته ئی ربړ ور کوی لدی ځایه وشړه د اد شپانه ښکلی کور د هغوی له شر څخه خلاص کړه او تر لاروی و روسته پر ته له عشقه بل چا ته د دی کوټی د ننوتو اجازه مه ورکوه.

داسی کار وکړه چی د شپون سره د هغه ښځه هم په ښځا راسی او د دی شنی د ښتی بوټی پخپلو پښو خچ بچ کړی او هغه وخت د شپانه د تیر ایستو په هکله دونی به ډیر ډیر د ځان په خوب وو هی ترڅو چی شپون هم ورسره پریوزی.

ای سولی! ای د نړی د هر د و ښه یګنو چینی راسه او دا وچه مځکه پخپل راتګ خړوب کړه ژر راسه او د جګړی ورو ستی نښی ښانی هم په پخپلو سپینو لاسو ووینځه زموږ له هوسو نو ډک ژوندانه خپلو هیلو ته ورسوه موږ ته له مینی او زړه خوږی څخه برخه راکړه زموږ ښځوانی عیشونه چه د جګړی په لاس له موږ څخه لیری شویدی بیرته راوګرزوه.

هغه د ژوند یوه ټی چی جګړی زموږ پر او ږو وایښی دی لیری کړه. داسی کار وکړه چی زموږ ژوند غم د ښکلو او ماهرو یا نو ناز او نخری وی داسی کار وکړه چی موږ په هوسا خاطر له سهار تر ماښامه په شنو ورشوګانو کی او په ډو وغږ بر واو د لار و یو سره د خپلو خوږو مینو کیسی وو ایو.

له جواهر البحور څخه

د نجيب ژباړه

# المنفلوطي

سيد مصطفى لطفي المنفلوطي د اوسني عصر له مشهورو ادیبانو څخه وو چې د ژوندحال ئې مستر ايچ - آر ګيب په [يو لنډين آف دى سکول اور نټيل سټډيز] کې په مجمل صورت سره ليکلى دى او موږ دلته له هغه مضمون څخه بعضې غوره خبرې په اجمالي صورت سره را نقلوو.

دغه نيم ترکى او نيم عربى اديب په معمولي صورت سره د ازهر په جامعه کې تعليم کړى او په شاعرى کې ئې ډېر ژر په خپلو هم عصرو شاعرانو کې لوړ نوم وګټه بيا نو و نثر ليکلو ته متوجه شو او اکثره اوقات به ئې المؤيد کې ښه خوږه مضامين ليکله له يوې خوا څخه د ادبا و د عربى ادب ته خدمت او له بلې خوا څخه د مذهبى اصلاح او اسلامي اتحاد تحريک چې نوى په مصر کې شروع شوى وو د ده حساس وجود تر دومرې تاثير لاندې راوستي چې په پای کې د متناقضو ميلانا تو مجموعه ځيني جوړه شوه نو هم دغه سبب وو چې په [١٩١٠] عيسوي سنه کې ئې د نظرات په نامه سره د مضامينو يوه مجموعه نشر کړه چې د تحرير د طرز او ښه والي د موضوع له حيثه د مصرى ادب په نوى عصرى کتابو کې نظير او مثال نه لري که څه هم مؤلف ئې په کوم او پای ژبه نه پوهېدى مګر دده کتاب او يا نور و اثرو هره موضوع ئې د وګړو هوګوار او سود - مضامينو غوندې رنګ لري ممکن چې د هغوى اثرات به په مستقيماً نه بلکه بالواسطه ور رسيدلي وي او بل دغه مضطرب دماغي جذباتي طبيعت ابتکاري شاعر چې تل به ئې د خپلې ښې نوعې پر تاريکو اړخو باندې رڼا اچوله او ژوندو لره د اوښکو يوه وادى وه چې د تخيل د رجوع له لارې به ئې ځان له هغو څخه ژغوره تل ده ويله زما په نظر تر حقيقى حسن تخيلي حسن ډېر مرغوبيت او مقبوليت لري.

د ښکلو ښارو د حالاتو ويل تر ليدلو ډېر خوندرا کوى ځکه چې زه پېريم چې اصل به د نقل خيالي خوښي زما له دماغه څخه وباسي مطلب دا دى چې دى اجتماعي اديب د بې انصافيو په لار کې پر هر چا او هر سياسي حزب باندې که د ښې لاس وو که د کيڼ شديده حمله کوله او هيڅوک ئې و مخې ته نه شواى دريدلاى تنقيدى ليکنو به ئې نور ننګ او غير مستقيم صورت درلودى چې د هر ويونکي د خيالاتو هنداره ګيدلاى شواى د مخه خو مو د المنفلوطي د نظريات نومې مجموعې څه ذکر وکې مګر تاسې ته دى دا معلومه وى چې العبرات نومې مجموعه ئې تر هغه لا په مضامينو کې خوږه او په زړه پورې ده او په دې کې محترم مصنف د امقصد ادا کړى دى چې عربي ژبه د غرب د اوږو ليکنو د ادا کولو قابليت په ټولو وجوهو سره لري.

## د عشق فلسفه

ويالي د رودو سره غېږ

په غېږ سي.

رودونه د بحر و سره.

همداسې په او بو کې د

څپو سره غېږ په غېږ کيدل

وګوره.

بادونه په خپلو حرکاتو

په يوه ښکلي ډول په وريځو

لوبې کوي.

لمر هم نړۍ په غېږ کې

نيسي.

سپوږمۍ هم د وريځو

سره وصل شي.

په جهان کې هيڅ شى

يوازى نه دى..

نو چې آسماني قانون

موږ سره تړلي يو ځله به زه و

ته سره بيل يو.

آخر هم د او صلتو نه څه

ارزښت لري چې زه و ته سره

يو ځاى نه يو

[د عمزى ژباړه]




## د سپوږمۍ
### په باب نوې معلومات

سپوږمۍ پنځوس واره ترمځکې کوچنۍ ده.

نه او به لري او نه هوا نه آبادي، نه په هغه ځای کې هوا سته او نه ژوندي موجودات.

سطح ئې د ډبرینو خاورو دوړو آتشفشانو، بې اوبو اوقیانوسو بعضی راوتلو اونو تللو ځایو څخه تشکیله شوېده د صوت خپریدنه ځکه چې هوا موجوده نده صورت نه نیسي.

داسې ځمکه ده چې یوه خوانې همیشه تاریکه ده.

او هر ژوندي موجود یخې کوي.

او بله خوانې همیشه روښانه ده او ګرمي ئې دومره ډیره ده چې ژوندي موجود کیدا بوی.



ځکه د سپوږمۍ هغه برخه چې همیشه ولمرته ده حرارت ئې دا یشید لی او بو تر حرارت ډیردی.

آیا پوهیږي چې سپوږمۍ په هره ثانیه کې دیو کیلو متر په سرعت د ځمکې پرشاوخوا راګرځي. نوپدې ترتیب په ۲۹ ورځو کې یو وار خپله دوره وهي او پدې وخت کې یو وار پرخپل ځان هم راګرځي او په ۳۶۴ ورځې کښې یو وار د لمر پر شاو خوا راګرځي. د کوچنیوالي په نسبت د سپوږمۍ د جاذبې قوه ترمځکې لږده او یوسل کیلووزن په سپوږمۍ کې درلودنکې د[۱۵] کیلو وزن دی. نوپدې ځای کې کولای شو چې په یوه لاس یو [۵۰۰] کیلوئي وزن ته حرکت ورکړو او هم کولای شو چې د یو خیز په واسطه د یوه کور په ارتفاع لوړ وغورځو.

د سپوږمۍ قطر ۳۴۷۶ کیلو متره او وزن ئې د ځمکې یو پرا(تیا) دی.

---

د کرېډ ژباړه

## دخورلسمې اپولو لګښت

دامریکا دفضائي ملي مؤسسې داسې تصمیم نیولی دی چې د راتلونکې اکتوبر په میاشت کې خپله څورلسمه اپولو فضاته ولیږي.

څورلسمه اپولو به بر سیره پرخپله شپاړل شوی وظیفې د دیارلسمې اپولو د ناکامې سبب روښانه کړي.

ډاکټر توماش باین د مؤسسې رئیس ووېل:

ددې نوی فضائي پروګرام لګښت به ۳۶۰۰ ملیون ډالره وي چې دا لګښت د دوه ملیون او اوه سوه ملیارډه افغانیو سره معادل وي.

دوی پدې تګ کې دزیات موفقیت په هیله دی.

(د دوهم مخ پاته)

## اصالت وجودي

اګزستانسیالستانو یعنې د وجودي اصالت طرفدارانو پر دیالکټیکي عقل د قلم بطلان خط کش کړ او انسان ئې کاملاً آزاد او مختار ګڼلو.

په فلسفي لحاظ دا مکتب جهاني هستي او ژوند یو خوشي او پوچ خیال ګڼي او دا وو هغه وه چه د دې تفکر یو اثر په فلسفي ساحه کې پاته نسو بلکه ادبیاتو ته یې هم لاره وکړه او په لږ وخت کې ئې مظاهر په فرانسه کې څرګند شو.

په ادبي دنیا کښې د اګزستانسیالسم جنبش په [کې اکګارد] نومي داستان لیکونکي جګه کړه او د اشعارو نه پر دغه جنبش لیکل شوي وه چې: [وجدان همیشه حقیقت خلقوي: کی ارکګارد] او [زه هغه وجود یم چې هستي هغه ته پیروي هایډګر]

دا جنبش تر اوسه پورې خوځرنګه چې د ژوند او واقعیت پر ضد راپورته شوی ده نو مقاومت یې وو په ورځ ختمیږي او لیږي ځه ده چې پخپله ګیډه دي ژر ولیدل شي.

دغې فلسفې په پیروي ادب هم زموخته څېره غوره کړېده او یو ذهني وحشت طوفان ئې عالم شمول کړی دی. دوی ژوند یوه بندیخانه بولي.

[آلبر کامو] چې د دې مکتب یو معروف لیکوال دی وایي [چا چې یوه ورځ ژوند کړی وي هغه کولای شي چې سل کاله په بندیخانه کې و اوسي]

[ژان پل سارتر] په خپل یوه داستان کې چې [ورتیرلی] نومیږي ټوله کوښښ دې ته وقفوي چې [نو ژوند زموږ له پاره د دوږخ حکم لري].

[اندره مالرو] چې هم د [اصالت وجودي] د فلسفې په پیروي کوم ادبي آثار منځ ته راوړي دي د هغو ټولو څخه د مرګ ناامیدي او بیهوده ګڼي آثار د ورا معلومیږي.

په ادبیاتو کې د لیکونکي لیکوالان چې په واقعبیني سره فلسفي مبادي په ژوند کې پلټي پر دې خبره متفق دي چې دا مکتب د تخیلي فلسفې د سل ګلنې کونږي سر ته د نوي انارشي ذهن له مشروع ازدواج څخه وزیږیدي که یو څه په سر ه سینه او خلاصو سترګو هغه روابط چې انسان ئې د ژوند سره لري ترغور لاندې و نیول شي نو دا حقیقت څرګندېږي سر ه ځان ته ور کولای شي چې ژوندون نه پر له پېچلې او نه پیژندونکې مسئله ده چې د اضطراب تر عنوان لاندې یې بیهوده ګڼې قلمبند شي.

هغه علل چې ژوند: اضطراب په څېر کښېباسي باید درک او نا پېژندونکې و نه ګڼل شي ځکه د بشري ټولنې تاریخ او اجتماعي مرحلې زموږ په مخ کې ټېر حسابي بیلانس ایښولی شي.

د (اصالت وجودي) د فلسفې او ادبیاتو د پیروانو خطا په دې ځای کې ده چې دوی اجتماعي سنن او تاریخي ارزښت ته قایل نه دي نو ځکه په اضطراب کې لاهو شویدي

که هر څو نه زور وو هل شي او د نړۍ هر متفکر مغز ودې ته وچوږیږي چې انسان د ټولنې څخه جلا کړی بیله دې چې دیو ذهني بغاوت مرتکب به ګرځیدلی وي بله نتیجه به ئې په نصیب نسي.

لکه چې د نولسمې پیړۍ د اروپایي ادب لوی مکتب رومانتیسیزم د خپل ټول قوت سره د و چ طبیعت خواته د انسان د سوق کولو په لار کې بریالی نسو نو د هغه پر لار روان نور مکتبونه هم د هغه سرنوشت او تکلیف سره مخامخ دي.

[پای]

د ن، نیازي ترجمه

# میده لیکنې

## او

## میده کاري

د مخه تر دې چې د نورې نړۍ د میده لیکنې او میده کارۍ د هنر په باره کښې څه ولیکو لازمه مو وبلل چې د خپل هیواد د پیاوړي هنرمند خطاط سید محمد داؤد الحسیني د میده لیکنې یادونه هم وکړو :

دوی کولای شوای او کړي یې هم دي چې پر یوه مربع انچ کاغذ [۲۲۷۰] توري مساوي [۵۵۵] کلیمې ولیکي او هم یې پر یوه دانه نرۍ ورجه ټوټه بسم الله شریفه توله د فاتحې او اخلاص سورتونه د خپل نامه، میاشت او کال سره لیکلي دي .

میده لیکنې د ذره بین په ذریعه نوشته او ویل کیږي چې د پخوا خطاطی ته [میده لیکنه] وایي .

په ۱۳۷ عیسوي کال کې د چین یو سړي چې په روما کې اوسیدی او د نصرانیت دین یې قبول کړی وو ده د ورجې د یوې دانې څخه یوه مجسمه جوړه کړې او د روم د پاپ ته یې د سوغات توګه وړاندې کړه دا مجسمه له هره حیثه ښکلې او مکمله وه او په عین زمان کې یې د ذره بین له کومک څخه چا نسوای کولای چې د هغه په ترتیب او اجزاؤ دې پوره علم را ولي .

همدا رنګه یو وخت یو سړي د فرانسې د اکاډمی رئیس ته یوه دانه غنم وړاندې کړ چې پر هغه [۴۳۱] ټکي نوشته شوي وې .

همدا ډول څو کاله مخکښې د سوریې یوه خطاط د یوې کوتمی پر غمی د الحمد الله شریفې سورت او پر هغې یې د عثمانیا د سلطنت مکمل تاریخ لیکل شوی ؤ .

تاریخ لدې قسمه کارونو څخه ډیر عجیب عجیب شیان لیکي چې د هغو له مخې د خلکو کمالونه او هنرونه ښه ترا معلومیدای شي مثلاً په [۱۶] عیسوي قرن کې یوه زرګر یو د سر وزري څنځیر جوړ کړی او ووه ملکې الیزابتې ته یې وړاندې کړ د اڅنځیر [۵۰] حلقې درلودلې د ومره میده او نازک وو چې که پر کاغذ او یا ایږو باندې نه وای ایښود شوی چا ته نشو معلومیدلای بالاخره هغه یې د یوه مچ پر پښو باندې وتاړه چې مچ لا هم د هغه د روند والي حس نکړ او په ښه صورت الوتلا شوای .

د [۱۶] قرن په آخرو کښې [جوزیف] د یوې دانې غنم څخه د یوه اسپانوي سړي توم جوړ کړی او دا توم د ومره مکمل او درست ؤ چې د ذره بین په ذریعه کیدلای شوای چې د هغه ټول اجزا په پوره ډول معلوم کړه شي .

همدغه رنګه یوه انګلیسي سړي یوه څلور

[باقي په ۱۰ مخ کې]

ادبي نثر :

# هغه نه وه !

د حویلۍ باغچې ته مې خپل ځان را کش کړ ۰۰۰
د ټولو ګلونو په خوږو بویونو کې د پتونې ګل خود نمایي کوله.
د حویلۍ پاکه فضا د خوږو خوږو بویو ځنځېر که وه.
نرۍ شمال سوړ سوړ لګېده او په خپلو پستو ځپو کې بې خوبۍ
وږمې هم د ځانه سره سمې نځولې ...
څورلمې سپوږمۍ هم پوره مزل کړی و او د آسمان منځ ته
را رسېدلې وه .
د سپوږمۍ په سپینو وړانګو کې ستورو ځانونه پټ کړي و ...
د شفق په ځنګلو کې د ځینو ستورو ولاړ هم د شوخې سترګکو نه وهل ..
شپه رڼا او رغ ګرځېدلې وه ....
ز پرسته ری وم په کټ کې مې ټوله واچوله
هیڅوک راسره نه و ... بس یوازې وم ...
دا نو ډېره سخته شپه وه ....
ځکه چې د کیف په ځای کې مې د یو ډېر پټ درد احساس کاوه .
سپینې سپوږمۍ هم زما دلاسایي نه کاوه د ګلو خوږه بویونه
په راته وړاندې اېښېدل .
ښکلې سپوږمۍ به راته کله د ځانه زما محبوب جوړ کړ راته
و به ئې خندل او بیا به ئې راته په شوه ستو د هم زما په حال پورې خندل.
دوی نو زما په یوازېتوب تأسف کاوه .
د داسې ښې او روغې شپې سره یې زما ځانله توب را پیاداوه په
کومه اندازه چې سپینې سپوږمۍ ما پورې خندل د ګلو نو بوی هم
زما په مړاوي توب هیڅ مړاوی نه وي .
د خواږه ساز هنګامې زما غوږو ته راتللې زما جذبې راتخېدلې
او زما حیراني آرزوګانې بې پښو راوستلې ..
زما په سترګو کې خوب چېر نه و ....
هغه هم را ځنې تر پېدلی و ....
ستوری ستو ما نه په کټ کې ځملاسم او د دوی واړو شوخۍ مې په زړه
تېرې کړې رشتیا ډېره د مزې شپه وه چې مې نازولې مینه وه....
ما نو رځ نسو کولای ....
ځکه چې بې ملګرې داسې ښې شپې بیا هم بېخوندې او درد ناکه وي.
همدومره مې وکړه چې د سپوږمۍ په رڼا کې او د ښکلو ګلو نه بویو کښې مې د دې شپې خاطره داسې.
ولیکله کاشکې چې په داسې وختو کې هغه هم راسره ملګرې وای .
«ط»

[د ۹ مخ پاته]

## هېڅ ولیکئ او ۰۰

ار به ئې ګالږې جوړه کړې او دومره کوچنۍ وه چې هغه به ئې د دوو کیکو په پښو پورې تړلې او د کاغذ پر مخ به ئې ایله کړه کیکه به د سکرېټ په دود سره متأثره شوې څو هغه به په حرکت راغله او ګالږې به ئې کش کړه.
یو سویلونی سړی چې «مورنجاریس» نومېدی د عاج ځنځه ئې [۱۲] دانې داسې غابونو جوړ کړی وه چې هغه ټوله د یوې دانې تور تور مرچ په پوست کښې ځائېدله .
دغه سړی داهم وایې چې ما یو سړی ولیدی چې د دکن حیدر آباد و او په یاد مې ندي چې د سعدي ګلستان و و که د خواجه حافظ دیوان و د یوې چرګ پر مخ باندې نوشته کړې او د سیل د پاره ئې ما ته راکړه چې ما په خپلو سترګو ولید .



پخوانی ادب:

# ښه چې خوارسو شمس الدین دائی سزاده

دریغ څه شو هغه یار چې مالیده
چې سری شونډی وهر چا ته مسیده
زما زړه څنی مراد نه مو نده هیڅکله
بیهوده ئې په تش نوم هسو سپړده
هیڅ لاس نژدې ورووړای نشو له وهمه
پرسپین مخ ئې تور مارونه تاوېده
د گل رخ و مخ ته هله دچا لارشي
که شبنم غوندی په شپه کې اورېده
عشق او صبر سره څه غواړی ناصحه !
بس کړه مکوه بیځایه ویلیده
زه محروم له خپله شعره نور کامیاب وی
ژبه کله لکه غوږ کړی اورېده
زه هله رحم شمېرم په مسلمان کې
که دلبر هسې په ژړا ؤنر مېده
دا بیضه ده دغمو، چې غم تری زیږی
که لېمه هسې په ژړا ویږ سپړده
ښه چې خوارسو [شمس الدین] دئ ئې سزاده
چې پرهسې رنگه یار مین کېده

[تپاند]

# داچې ولاړم

ډیر نازونه مې دی و ګالل چې ولاړم
ستا له غمه مې ډیر وژړل چې ولاړم

✡✡ ✡ ✡✡

چې د شو نډو ښکل دی زما په نصیب نه شو
د وه شو نډ ان مې سره و چاو دل چې ولاړم

✡✡ ✡ ✡✡

د رسته شپه مې په زاری د رته سبا کړه
ټول د زړه وینه مې وخوړل چې ولاړم

✡✡ ✡ ✡✡

که هر څو د رته په چیغو په کوکار سوم
تش کوګل، سینه مې وڅیرل چې ولاړم

✡✡ ✡ ✡✡

بې پروا یې اعتنادی پسر کښي څمل
نا آشنا په چم دی وکتل چې ولاړم

✡✡ ✡ ✡✡

محبت دی قبول کړی ما [تپاند] ؤ
خو رقیب سره دی وخندل چې ولاړم

---

## سترګی

د خپلی محبوبې د خو مارو سترګو په باره کې مو تر اوسه ډیر شیانلو ستي او اوریدلي دي مګر سره لدې فکر کوو چې لاندني مطالب تاسو ته نوی غوندی ښکه چ-ی داد ډاکترانو د مطالعاتو وروستي نتیجه ده :

[۱] غټې سترګې د هوښیارۍ او څیرکۍ نښې دی .
[۲] وړې سترګې د قوي جنسي تمایلاتو نښې دی .
[۳] ګردې سترګې د کم فکرۍ او خراب ذهن نښې دی .
[۴] راوتلې بادامي سترګې د ښه او صفا زړه د رلو دلو علامې دی .

ویران




یـو لېوه راغـی پر کلي
ددې خلـکـو سره چې وه
لوی ناری وې او هی هی ؤ

چې ډیر خلک پسې ګڼلي
تو پکان وه او سوټې وه
سپېری دوړی وې ـ دړ بی ؤ

لېوه هم ډیر هولکی ؤ
نه ئې ځای د پټېدو ؤ
دروازی د ټـــوله کلي
ډیر چابک راغی په ځغاسته

لدې خلکو ځه شا کی ؤ
نه ئې ځای دخلاصیدو ؤ
وې پرده باندی تېرلـی
پریو بام وه پیشی ناسته

لېوه و ویـــل پشی ته
چې می پټ دلته یو آن کړی
پیشه ووې ورسه [تور] ته
[ تورلالا ] به در رسیږی

زه نن اړیـــم به سړی ته
اوله دوی می په امان کړی
دا نژدې د هغه کور ته
په نیکی دی ډیر یادیږی

لېوه دا وخت فکرجن شو
نه ورتی ء پر کور له شرمه

خپلو کړو ته ارمانجن شو
وې ویل په لهجه نرمه

[تور] درلودیو ځواوز ګړی
پیشی بل سړی وریاد کی ء
[دادلالا] دهغه نـــوم ؤ

هغـه مادی ځنی وړی
نوم ئې ده ته وریاد کی
په نبه والی کی معلوم ؤ

ژر ورځه د هغه کور ته
ده وویل ته خـــوښه وایی
[داد] یو لوی مړۇ ساتلی

کنه ولوېدې و اورتـه
مابه هلته ځنګه بیایې ؟
هغه مادی ورځېرلـــی

دده خـواتـه کتای نسم
پیشی بل یو ور پیدا کی ء
لېوه بیاهم څه حیران شو

اولـه بیری ورتلای نسم
معرفی ئې [فیض لالا] کی ء
و پیشی ته پـــه بیان شو

ویل ده ساتلی وری ؤ
ما هغه ځنی حمله کړی ؤ

چی هغه لا ډېر کوچنی ؤ
او وځان ته می گوله کړی ؤ

اوس له دې ځخه ډېر یم
نو دره ورغی پیشو ته

او په خپل عمل شرمېږم
ویل گوره خپلو کړو ته

چی هیڅ ځای دی نسته مرسته
بیا هم ورسه و [اکرم] ته

د استا خپل کړه دی نادرسته
یا یې ورور [محمد اسلم] ته

گوندی دوی به دی حامی سی
لېوه آه و کېښ له غمه

او ستا ژوند به په خوندی سی
ورپه زړه شوه خپله کرمه

ویل سړی چی پسرلـــی ؤ
دوی به وی راته په قهر

مانې وړی یوسیرلی ؤ
دانو ماته لکــــه زهر

پیشی وویــــل وده تـه
چی تړلی دروازې دې

وظالم خو نخوار لېوه ته
او دهر چاستر گی سرې دی

داچی هر یو په نفرت دی
په هر ځای کی چی یو [ور] دی

ټوله ستا خوی ؤ خصلت دی
ټکولی دی پــــه شر دی

ستا د لاسه نه روغ زړه سته
کرغېړن دی خپل عمل دی

نه دی خیر، نه دی ښه سته
خپل عمل د لاری مل دی

چی په هر ځای کی وی زخم
بلکی مالگــه دی لاډېره

تا پر کړی نـه وی رحم
پری پاشلی وی سر بېره

نو ظالمه اوناتــــرسه
چاچی هر څه وی کرلی

څه دمرگ وخولې ته ورسه
بیا ئی ۔دی هغه ریبلی

خلک راغله لېوه گیر سو
او اخته دمرگ پــه ویر سو



# شپږ زره کاله پخوا...

شپږ زره کاله کېږي چې سړي د سړو په وژلو لګیا دی.

... آسمان هر کله د زنبق د ګلونو او د ښایسته مرغیو د ځالو په صورت خپل استاذي را استوي چې دوی د صلح او محبت خوا ته رابولي مګر دغه د مینې پیغامونه د خلکو له زړونو څخه دلیونتوب اثر نه وړي.

له ډېره وخته د مځکې د خلکو زړونو ته مینه له وژلو او وینو تویولو سره پیدا شوې ده ډېره موده کېږي چې د ملتونو خوږه او جزابه موسیقي د جنګ او جګړې ساز او سرود دی.

ډېر وخت چې افتخار د ډېر و ونکي خپسکي پیدا کړي دي چې په دیو هیکله ازابه په لاره تېر ېږي او ښځې ژړان، لوی واړه تر پښو لاندې چیتوي.

اوس زموږ سعادت او نیکبختي له ډېرې مشکل پسندۍ نه کار اخلي او هغه وخت ئې وچولی غوړېدلی وي چه خلک وواني «ځانونه وژنو» اوس باید د سعادت ګټلو د پاره د جنګ نغاره وډنګېږي.

هر چېرې د پولادو برق په ځلېدو دی په هر ځای کښې د بلو لمبو لوګي او لوخړې پورته کېږي.

هغه خلک چې ډلې ډلې د خلکو د وژلو د پاره د جنګ میدان ته روان دي د خپلو تورو شپو د رڼو لو د پاره د توپونو د خولو لمبو ته ضرورت لري.

د اټول کارونه یواځې د قومونو د مشرانو د جاه طلبۍ د پاره دي.

هغوی لا په موږ باندې خاوري نه وي اړولي چه زموږ په قبرونو باندې د دوستي معاهدې کوي.

ځناورو او مرغان لا د جنګ په میدان کې زموږ په وینو او هډ کو پسې ګرځي او دغه ښاغلي آقایان یو له بله سلامونه او احترامونه مبادله کوي.

زموږ په ننني د نیا کې هیڅ ملت نه غواړي چې بل ملت خپل ګاونډی وینې.

---

هره ورځ د قهر او کینې احساس زموږ په روح کې تقویه کوي او هغه اور ته لمن وهي چې دوی پخپله بل کړی دی....

ښاغلي چې له یوه سیوري لاندې آرام کښېناستل د یوې چینې خوږې او به ځکل له یوې ګڼې او ګوړې ونې لاندې د خپلو رویاوو سره مشغولا، خوند او لذت ولري

مګر د نن ورځې انسان لدې ټولو خوندونو د خپلو ورونو په وژلو کې مومي.

هغه وخت چې سپېدې

چوی او د رڼا پیغام جهان ته راوړي هغه وخت چې د سحر مرغه نغمه سرائي کوي دغه جګړه مار انسان د وژلو او وینو تویولو په فکر کې وي او له کینې نه کار اخلي.

د «هوګي» ټا کنه

د مور د ورځې په مناسبت

# ممتازه میندې



لومړۍ درجه مور میرمن شاه بي بي د پکتیا د ولایت څخه
دوهمه درجه مور میرمن طاهره سرخابي د فاریاب د ولایت څخه
دریمه درجه مور میرمن طاهره نوري د کندهار د ولایت څخه
څلرمه درجه مور میرمن حبیبه د کابل د ولایت څخه



د جوزا ۲۴ نېټه د مور ورځ وه په کابل او ولایاتو کښې په خاصو مراسمو سره ولمانځل شوه.

په دې ورځ د کال ممتازه میندې هم وټاکل شوې او د معظمې ملکې له خوا هغوی ته جایزې ورکړه شوې.

څلور میرمنې سږ کال د ۳۱ کاندیدانو له جملې څخه د کال د ممتازو میندو په حیث وپېژندل شوې.

دغه مطلب د میرمنو د ټولنې د قلم مخصوص مدیرې میرمن حفیظه خلیل د هیواد له خبریال سره په یوه مرکه کې څرګند کړ.

میرمن حفیظه خلیل چې د مور د ورځې د چارو متصدۍ هم ده وویل چې سږ کال میرمن شاه بي بي ادي د پکتیا له ولایت څخه د کال لومړۍ مور، میرمن طاهره سرخابي [د فاریاب له ولایت څخه] دوهمه ممتازه مور، میرمن طاهره نوري

د [کندهار له ولایت څخه] دریمه ممتازه مور او میرمن حبیبه روستا (له کابل څخه) څلورمه ممتازه مور وپېژندل شوه

دی زیاته کړه چې سږ کال د دغه مقام لپاره له کابل څخه (۲۵) میندو او له ولایتو څخه (٦) میندو ځانونه کاندید کړي ؤ.

داچې د کاندیدانو شمېر له (۱۸) څخه (۳۱) ته جګ شو څرګندوي چې د مور د ورځې نمانځلو غوره تشویقي جنبه پیدا کړې ده.

## د ممتازو میندو د ټاکلو لپاره شرایط

د میرمنو د ټولنې د مخصوص قلم مدیرې وویل په عمومي توګه له هغو میندو څخه ممتازې میندې ټاکلې کیږي چې د مشکلاتو په ګاللو سره یې خپل زامن، لوڼې تربیه کړي وي او له دوی څخه یې خداپرست

وطنپال او شاه دوست عناصر جوړ کړي وي. دې د توضیحاتو په ترڅ کې وویل چې د ممتازو میندو په ټاکلو کې کورنی

اقتصاد او محدودیتونه، محیطي شرایط، د زامنو او لوڼو د تعلیم او تربیې سویه او عالي تحصیلات او وطن ته

د دوی صادقانه خدمتونه په نظر کې نیول کیږي همدا-

رنګه د مور روحي او اخلاقي سلامتیا او د دې د صالحو

زامنو شمېر هم د ممتازې مور کېدو له شرایطو څخه دي.

## د کال لومړۍ مور

میرمن حفیظې (خلیل) دیو ړوند له مخې وویل هغه مور چې د کورنۍ په محدودو اقتصادی شرایطو کې ئې خپل زامن تحصیل یافته عسکر روزلي او قوماندې ته ئې د خدمت لپاره وړاندې کړي دي میرمن شاه بي بي ده چې د کال لومړۍ مور وټاکل شوه .

میرمن شاه بي بي دغلام رسول خان (سرباز) لور او د مرحوم جګړن محمد عمر خان ماندینه ده ،

دا د پکتیا د ولایت له مرکز ګردیز څخه داوو کیلومترو لیری کلی «بالا ده» او سیدونکې ده او پنځوس کلنه ده ددې میړه یو زړور

سړی وو چې د ګران هیواد په نجات کې ئې فعاله برخه لرله .

میرمن شاه بي بي (ادی) د خپل پلار او میړه له مکتب څخه چې دوی زړور کسان وه له وطن سره مینې او د وطن د خدمت لپاره

د صالحو زامنو د روزنې درس زده کړی دی ، دی پنځه ویشت کاله کونډه توب کړ او خپل پنځه

یتیمان زامن ئې په هغه محیط کې چې د تحصیلاتو امکانات ډیر سخت وه وروزل او د علم او پوهې خاوندان ئې کړل .

میرمن شاه بي بي به د نارینه ؤ په څیر د کرنې په چارو بوخت کیده او د خپلو زامنو د روزنې او ښې ودې

له پاره به ئې شرایط برابرول دی ته یوازې اتیا افغانۍ هره میاشت ددې د میړه

تقاعدی معاش ورکول کیدی او د لس جریبه ځمکې نه زیات نور عایدات ئې نه درلود خو ددې د جرأت زړورتیا ،

ټینګې ارادې او فداکارۍ نتیجه دا شوه چې دا د یوه طبیعت او د درو تحصیلیافته

عسکرو مور شول او له همدغه امله د ۱۳۴۹ کال لومړۍ ممتازه مور وپیژندل شوه .

د شاه بي بي ادی زامن دادي:

۱- دانجنیرۍ تورن محمد عثمان (عمری) د استحکام د پوهنځی استاد او س په مسکو کې د انجنیرۍ د اکاډمۍ محصل دی .

۲- د روغتیا د وزارت په مربوط روغتون کې ملکی دکتور محمد امان (عمری) چې د کابل پوهنتون د طب پوهنځی څخه فارغ شویدی .

۳- د تخنیک د پوهنځی استاد لومړی بریدمن محمد الله یار عمری چې د چکوسلواکیې څخه عالی تحصیلات لری .

۴- د تخنیکی خدماتو د ریاست د وهم بریدمن محمد هاشم (عمری) د ملی دفاع د کورس محصل .

## د کال دوهمه ممتازه مور

میرمن طاهره سرخابي چې د فاریاب د ولایت د اوسیدونکې غلام محی الدین ماندینه ده یوه پوهه او تجربه لرونکې مور ده چې د کورنۍ

او محیط د محدود اقتصادی شرایطو له مخې ئې خپل زامن او لوڼې د علم او معرفت خاوندان کړیدي .

دا زحمتکښه مور ویاړی چې زامنو ته ئې د عالي تحصیلاتو لاره ښودلې او په

دوی کښې ئې د وطنپرستۍ ، شاه دوستۍ او قوماندې ته د خدمت روحیه تزریق کړې

اوس ئې زامن د خپل ګران هیواد او مهربان پاچا واړه خدمتګاران دي .

میرمن طاهری د خپل

میړه له وفات کیدو څخه راوروسته دخپلو لوڼو او زامنو تربیه په خپله غاړه اخستې ده سره ددې چې

اقتصادي محدودیتونه ئې لرل ټولنې ته ئې پنځه تنه صالح زامن اولوڼې وړاندې کړیدي.

۱ ـ فریدون سرخابي تحصیلات ئې دبکلوریا په سویه دي او په آریانا هوایي شرکت کې وظیفه سرته رسوي .

۲ـ تیمورشاه سرخابي چې دکابل له پوهنتون څخه دانجنیرۍ په ښق کې له فارغ

کیدو څخه وروسته یې د ماستري علمي درجه او له لیسانس څخه ور پورته درجه ئې له چکوسلواکیې څخه راوړېده .

۳ـ احمدشاه سرخابي چې دعالي تحصیلاتود پای ته رسولو نه وروسته شوروي

ته واستول شو د انجنیرۍ په ښق کې دماسترۍ ددرجې اخستلو اودعسکري مقدس

مکلفیت ددورې تیرولو نه وروسته اوس د ننګرهار دکانال دپروژې په ریاست

کې د ترانسپورت دلوی مدیر په حیث وظیفه اجراکوي .

۴ـ محمد همایون سرخابي

دکابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو لیسانسه چې په امریکا کې ئې هم عالي تحصیلات سرته رسولي دروغتیا د وزارت

دمخصوص قلم دمدیر په حیث ئې وظیفه اجراکوله چې اوس په آسترالیا کې دی.

۵ـ محمد هارون سرخابي دنادریې دلیسې فارغ التحصیل اوس په امریکا کې افغاني محصل دی .

۶ـ میرمن ثریا سرخابي چې دفاریاب په ولایت کې دستاري په ښوونځي کې دمعلمۍ وظیفه اجراکوي .

۷ـ بلقیس سرخابي چې په نازو وړ کتون کې دمعلمۍ په حیث وظیفه لري .

## دریمه ممتازه مور

میرمن طاهره (نوري) دکندهار داوسیدونکي غلام صدیق لور او دښاغلي نور محمد (نوري) ماندینه ده . دغې میرمنې له څو کلونو راهیسې

چې میړه ئې دناروغۍ له امله تقاعد کړی دی دخپلو زامنو او لوڼو له پاره دمور او پلار وظیفې

اجراکړې دي سره ددې چې ددې په کورکې مریض پروت

و خپل حواس ئې پریشانه نه کړل په قوي زړه او پوره

جرأت ئې خپل عالي هدف ته چې دصالحواولادو روزنه ده ځان ورساوه .

میرمن طاهره یوازې دخپل میړه دسرکتاب دتقاعد په تنخوا و کولای شول چې خپل اس تنه نارینه اوښځې

اولادونه له علم او پوهې سره آشنا کړي او ټولنې ته د خدمت کولو لار ښوونه

ورته وکړي ، له دې امله چې ښځوا په کندهار کې دنجونو

لیسه نه وه او پوهنتون نه لري میرمن طاهرې په ځان کړاوونه ومنل او

دخپلو زامنو اولوڼو درسولو له پاره ئې په کابل کښې موقتي استوګنه غوره کړه ،

دې میرمنې لاندنې زامن او لوڼې دټولنې دخدمت لپاره روزلي دي.

۱ـ محمدحسین (نوري) د

طب دپوهنځي فارغ التحصیل چې اوس په لشکرګاه کښې دجراحۍ ډاکټر دی .

۲- محمد حسن (نوري) د انجنیري د پوهنځي فارغ‌التحصیل او س په افغاني ساختماني دستگاه کښې خدمت کوي.

۳- عبدالقادر (نوري) د کندهار د مشرقي لیسې د اتم ټولگي زده کوونکی.

۴- محترمه نوریه (نوري) د کابل زیږنتون د پېلوومه چې اوس د کندهار د مستوراتو د روغتون سرقابله ده.

۵- گل مکۍ (نوري) د کابل زیږنتون د پېلومه چې اوس د کندهار د مستوراتو په روغتون کې وظیفه اجراء کوي

۶- پېغله بریښنا (نوري) د مستوره غوري د ښوونځي د پښتو ښوونکې.

۷- گلالۍ (نوري) د کابل د زرغونې د لیسې فارغ‌التحصیله چې اوس د نادعلي په ولسوالۍ کښې ښوونکې ده.

۸ - گل غوټۍ (نوري) د کندهار د زرغونې انا د لیسې فارغ‌التحصیله چې د کندهار په زینب ښوونځي کې ښوونکې او د کندهار د دارالمعلمین په ۱۴م ټولگي کښې په زده کړه بوخت ده.

۹- زرینه (نوري) د کندهار د زرغونې انا د (۱۲) ټولگي زده کوونکې.

۱۰- نازو (نوري) د کندهار د زرغونې انا د دوولسم ټولگي زده کوونکې.

# د کال غوره

## ممتازه مور

هغه مورچې ځان او خپلو زامنو ته ئې نجات ورکړی دی میرمن حبیبه (روستا) د میرزا عبدالواحد

لور او د پروان مینې د او سیدونکي محمد حسین ماندینه ده دا (۴۹) کلنه ده

میرمن (روستا) یوازې د خپلو زامنو او لوڼو د پاره نه بلکه د خپلو ټبرزیو له پاره هم زړه سواندې مورده دې د

خپل میړه د هغو اولادونو د پالنې له پاره هم د مورولۍ وظیفه په غاړه درلوده چې له بلې ښځې ئې بې موره پاتې شوي او هغوی ئې د خپلو زامنو او لوڼو سره یوځای تر روزنې لاندې ونیول.

د دې میړه ښاغلي محمد حسین په دارالتحریر شاهي کې د کاتب په حیث وظیفه اجرا کوله میاشتنی معاش ئې له درو سوو افغانیو ځخه له زیاتېده په دغه معاش باندې د یوې یوولس کسیزې کورنۍ گوزاره نه کېده له همدې کبله میرمن حبیبې په میړانه ملاوتړله د خپل میړه سره د مرستې کولو له امله ئې په خیاطۍ پیل وکړ او لدغې لارې ئې د خپل میړه اقتصادي پیاوړی کړ.

د خپل میړه د مړ کېدو نه وروسته ئې هم ۱۶ کاله دغه کار ته دوام ورکړ او له دغه درکه په کم وعایداتو ئې په صبر او حوصله سره گوزاره وکړه او زامنو او لوڼو ته ئې د پوهې او معرفت زمینه برابره کړه. دې په دوو ځې دخپل کور چارې سرته رسولې او د شپې به ئې خیاطي کوله د دې ټبرزیان دازدواج سن ته ورسېدل او ودونه ئې وکړل په دې وخت کې میرمن حبیبې (روستا) ته یوازې د خپلې اولادې د روزنې مسئولیت پاتې شو او په ابرو وعایداتو سره ئې صالح زامن او لوڼې وروزلې د دې د زامنو او لوڼو تعلیمي سویې او مصرفیتونه ئې په لاندې ډول ځرگندېږي.

۱- ډکتور عبدالعلي (روستا) د ابن سینا په روغتون کې جراح ډاکټر.

[اوریه ۲۰ مخ کې]

ښاغلی الحاج حبیب الله [سرپاس]

# عجب

له ناوړو عادتو ځخه یو عجب دی چی عرفاً او شرعاً بد بلل شوی دی. عجب د عین په ضمه سره خودبینی او ځان لیدلو ته ویل کیږی او له هغو ناوړو خصایلو ځخه شمیرل شوی دی چی د جهالت ځخه پروزکوی او حسنه اعمال تباه او برباد وی او خپل عامل په جامعه کی سپک او بی قدره کرځوی یعنی هغه ځوک چی پخپلو اعمالو و یاړی او په دی سره مغرور وی چی زه تر نورو خلکو هم په ظاهری شکل او صورت او هم په باطنی خوی او خاصیت کی مزیت او فضیلت لرم او نور خلک دو له لیاقت او پوه والی نلری او په دی سره فخر کوی یعنی خپل خوی وخاصیت او اعمال وده ته ښه ایسی او خپل بد اعمالو ته ئی فکر نه وی بلکه ستر کی ځنی پو ټه وی او کرسره ئی په یاد نه راولی بالعکس د نورو خلکو خطاوی او ګناهو نه پر ګوتو باندی یو، یو حسابی او د ځان نه سره وایی چی زه تر هغو خلکو چی په بدو اعمالو اخته وی ډیر ښه او فضیلت لرم نو د غه وضعیت ته چی د نفسی خواهیشاتو پر مقتضاء باندی بناء وی او تر نورو ځان افضل بولی عجب او فاعل ته ئی معجب ویل کیږی.

د عجب ډیر اقسام او شکلونه دی په علم سره عجب کول په عمل سره عجب کول، په حسن او ښایست سره عجب کول، په ملک او مال سره عجب کول بلکه هر هغه شی چی د نفس په مطابعت د نورو خلکو ځخه خپل عامل دده په نزد ممتاز کرځوی هغه عجب دی.

معجب سړی تل په روحی فشار اخته وی، د خلکو ځخه مراعات غواړی چی هر چیری دده مراعات او عزت باید وی که چیری دده دخواهش او آرزو په اندازه ئی چا عزت ونه کی فوری په زړه کی خوپل کیږی او هغه سړی ته چی دده مراعات ئی ندی کړی د ښمنی په ستر ګه ګوری او که ئی د وسه وسی انتقام هم ځنی اخلی مقصد معجب سړی تل د خلکو سره په زړه کی په دعوی او جنګ اخته وی هیڅوک د ځان سیال نبولی او غواړی چی دا خپل فوقیت په هر قیمت او هره تو ګه چی امکان لری پر نورو باندی ومنی او خلک وده ته په احترام قایل سی که د خلکو له خوا دده د آرزو په اندازه کوم عکس-العمل ښکاره نسو دی دد ښمنی په مقام کی دریږی که د ښمنی ئی د لاسه پوره نه وه په زړه کی عداوت ور سره اختیاره وی ځکه چی رسول اکرم [ص] کبر او عجب نفاق بللی دی یعنی عجب د خلکو په منځ کی نفاق راولی ځکه معجب سړی تل خپل افعال ستایی او پر نورو باندی بدوایی چی په نتیجه کی د ډیرو مناظرو، ومباحثو او مناقشو ځخه د خلکو په منځ کی جدایی پیدا کیږی او یو د بل په د ښمنی او خرابی پسی ملاوی تړی چی د غه ته نفاق ویل کیږی.

---

[د ۱۹ مخ پاته]

**ممتازه میندی**

۲- د کتورس عالیه (روشن) د میوند وات په کلینیک کی د کوچنیانو ډاکتره.

۳- میرمن حلیمه د ابن سینا د روغتون د اخله سر همشیره.

۴- محمد موسی چی د نارو غی له امله ئی خپل تعلیمات له نهم ټولګی ځخه جګ نشوای کړ ای اوس په سیلو کی د ټایپستی وظیفه اجرا کوی.

۵- محمد محسن ددې بن زی د انجنیری د پوهنځی لیسانسه چی اوس په پولیتخنیک کی وظیفه لری.

۶- معصومه د حبیبی روستاد میره وریره چی له نهم ټولګی ځخه فارغ کیدو نه وروسته ئی ازدواج کړیدی

دښاغلي [سړبن] تتبع او غونډونه

# د کندهار هغه نادره شعراء چې د زمانې په مختلفو ادوارو کې تير شوي دي

## ابي القاسم خواجه احمد ابن حسن ميمندي کندهاري:

حاجي سيف الدين عقلي د آثار الوزرا په کتاب کښې ليکي چې خواجه احمد حسن ميمندي د سبکتګين په زمانه کښې د بست حاکم و، په نسبت د منډو بيدو دغه خيانت په دار کول سوزوي خواجه احمد ابن حسن چې د سلطان رضايي ورور او په يوه مکتب کې سره تربيه شوي وه د خپل ښه خاقيت او فضيلت په برکت ئې په سلطنتي دربار کې هومره اقتدار درلودی چې وزيران ئې ونکړ زته نه شواي رسيدلای په ابتدا کې د سلطان محمود د پاچهۍ ئې د مخصوص دفتر د مشر توب عهده درلوده په پای کې ئې خپل شخصي لياقت او د سلطان عنايت درجه لوړ کړله څو د مستوفي الممالک او د وزارت ور ته ببي

ته جګ شو او په عين حال کې ئې د لښکر د تنظيم دنده هم په غاړه کښې وه ميرزا عبد العظيم ګرګاني خپل د املا په کتاب کښې د پورتني ليکنې په تائيد ليکي چې شيخ الجليل ابو لقاسم د يمين الدوله د دفتر څراغ و

د ده لو مخصوصو فرمانونه او نورو خصوصيا تو کلي له ده څخه وه له حيث څخه د فضيلت، علميت او تجربې ئې په ده له خراسان کې ساری نه درلودی هغه کارونه چې ده د بست د حکومت په زمانه کې وکړله سلطان ئې په حيرت کښې وا چاوه د آثار الوزرا کتاب وايي د همدغو

خدمتوا ثروچې ده له خراسان کل اختياره حاکم مقرره شو داهغه زمانه وه چې سلطان پر ابو العباس باندې د څينو وجوها تو له وجه ونيستېدی او بندی ئې کې ·

نو خواجه احمد ابن حسن ئې ونګماري چې خراسان ته ولاړ شي او د هغه ځای له خلکو څخه خراج ټول کې کله چې نوموړی سره له ډير و تحفو او رضائيت خطر د خاطر راغی نو سلطان په بدل کې د هغه د وزارت منصب ور کې ابو العباس پخواني وزير په دې نسبت چې په عربي نه پوهيدی نو دفتر و نه ئې ټوله دري کړی وه ·

---

مګر دې چې په عربيت کښې استاد او منلی سړی و، بير ته ئې امر و کې چې فرامين او مکاتيب دې عربي شي

بد بختانه چې وروسته تر ۱۹ کاله وزارت د حاسدانو د غندنې په اثر برطرفه او څو

عمر ئې په عزلت او بيکاري سره تير کې اما وروسته تردې چې سلطان مسعود ته ددوی خبري ټوله دروغ او بې

حقيقته ثابتې شوې نو پسله عذرخواهې ئې بيرته په وزارت مقرره کړ دې نيم

کاله ئې لا نه وه تير شوي چې په ۴۲۴ سنه کې وفات شو پدې مدبر وزير پوري چې هر څه

اتهامات تېر شوی دی حقیقت نلری بلکه د اخلاق او دیانت یوه مجسمه نمونه ده

# مرحوم منشي محمد کريم کندهاري

۹۰ کاله دمخه هغه وخت چې د پښتو مدنیت پروره پاچا امیر شیرعلي خان ژوندی ؤ، زموږ وطن بعضی پوهان او وینښ خلک درلوده چې دوی وطن ته پر لوړ مدني اصولو ترقي ورکی او د نوی دنیا بعضی

نوی لوازم او عصری شیان دلته تهیه کی داو پښه ولـه لکه جمال الدین افغان غوندی مشاهیر پکښې وه چې دو ښې او وطن خواه پاچاه تر سیوری لاندی روزل کیدله .

اما متاسفانه چې وروسته تر لږی کامیابی یوه مدهش انقلاب دوی سره جلا کړه یو له دغو پوهانو خلکو څخه مرحوم منشي محمد کریم کاکړ کندهاری دی چې دده څخه یو عالی اثر هم پاته دی او اوس لی موږ په هغه سبب پیژنو او غواړو چې د احساس ادیب

له نوم ور کی څخه و باسو دده اعلیحضرت امیر شیرعلي خان په عصر کی حساس او یو ژنرال (سرغنډ مشر) ؤ دداوډ شاه خان په فرمایش د اقوام المسالك في بیان احوال الممالك نومی کتاب چې د سید

خیرالدین تونسی اثر دی له عربی څخه په دری ترجمه کړی دی چې یوه قلمی نسخه ئی دده په خپل خط ما لیدلی ده له ترجمې څخه د فراغ زمانه ئی د دوشنبی لسمه د جمادی الاول ۱۲۸۴ هجری سنه ده په دیباچه کی د کتاب ئی د اعلیحضرت امیرشیرعلي خان معارف خواهی

او علمی تشویقات او د هغې دوری درجالو مخصوصاً د مرحوم جنرال داوډ شاه خان علم دوستی او د وطن خواهانو احساساتو ذکر کړی وو دی کتاب مترجم سړی دی چې دداسی نوی عصری، مدنی

اثر ترجمه ئی کړې ده او دا کتاب به لومړی یا دوهم کتاب وی چې په افغانستان کی د دفتری مدنیت او علم پر اصولو لیکل شوی دی .

امیر

امیر داسی معلومیږی چې د تلو کان د یو پلز و څخه ؤ او دده ژوند

موږ په ۱۳۰۰ حدودو کی تا کلای شواو د ۹۵ کالو په سن مړ شوی دی امیر ښه عالم

فاضل او وینښ پښتون ؤ علاوه ددې نه زموږ د ملی ژبې پښتو حساس انتقادی او اجتماعی شاعر و امیر په

بذله گوئی کی هم ډېر شهرت درلود په کندهار کی تر اوسه د ادب د خاوندانو

په خولو کی دده ظریف او شوخ بیتونه پاتې شوی دی دده د دیوان څخه داسی معلومیږی چې د ژوند

آخیرنی شپې او ورځې ئی په گرشك کی تیری کړی دی زموږد ملی ژبې پښتو

په شعراؤ کی داډېره نادره ده چې شاعر دی د پښتو د دیوان نه علاوه دری او عربی دیوان ولری امیر د

پښتو ژبې په هغه ډله کښې شمېرل کیږی چې په پښتو، دری او عربی ژبو کښې

دیوانونه لری د پښتو دیوان ئی په کندهار کښې ډېرو خلکو لیدلی دی به دې او اخرو کی هم د اطلاعاتو او کلتور په عامه کتابخانه کښې

چه لیدل شوی دی. (پاته لری)

مصاحبې او مرکې

# په کندهار کې په تیرو ۴۹ کلونو کې د پوهنې انکشاف

## په پراخه پیمانه صورت موندلی دی

په همدې ورځو کې چې د کندهار د دارالمعلمینو، لیسو، او نورو ښوونځیو او تعلیمي مؤسسو کلنۍ ازموینه شروع وه زموږ راپورتر انو د راپورونو د تهیې په منظور یکښې اشتراک وکی زموږ: پوهنې عمومي چهره او د ځینو مؤسسو د ازموینې د جریان څخه ئې عکسونه او راپورونه تهیه کړه چې موږ ئې لنډیز د لته راوړو:



په عالي دارالمعلمین کې د ازموینې جریان



د اساسي دارالمعلمین د ازموینې یو اړخ

## په عالي دارالمعلمین کې

په کندهار کې عالي دارالمعلمین دیوې عالي تعلیمي مؤسسې په شکل د پوهنې د وزارت د معلمینو د تربیې د ریاست له خوا جوړه شوې دی او اوس ۱۰۰ تنه شاګردان لري د دې مؤسسې شاملین ښځې او نارینه معلمان دی.

د کندهار دارالمعلمین په ۱۳۴۷ کال کې په کندهار کې تأسیس شو.

دا مؤسسه دوې څانګې لري چې یوه ئې د خدمت داخل څانګه ده.

د کندهار دارالمعلمینو لوی مدیر ښاغلی عبدالمنان وویل چې د دغې مؤسسې ازموینې په تحریري توګه واخیستل شو خو یوازې د ژبې مضامین لکه دري، پښتو، او انګلیسي په تحریري او تقریري توګه وه.

د دارالمعلمینو ازموینې دوې هفتې دوام کوی.

---

په اساسي دارالمعلمین کې:

دا مؤسسه د لومړنیو ښوونځیو د پاره معلمان تربیه کوی.

پدې مؤسسه کې د کندهار، هلمند، روزګان، فراه او نورو تودو سیمو د ولایاتو د نهم ټولګي فارغان شامل دی.

په دې مؤسسه کې د ساینس او اجتماعیاتو

مضامین تدریس کیږی خو سربیره پردی د اساسی دارالمعلمین د دوایزو مضامینو شاملین مکلف دی چی د معلمی اختصاصی او مسلکی مضامین هم زده کړی.

د دارالمعلمین اوو لس ټانګی لری او وهغه شاملینو ته د ۴۰ تنو معلمینو له خوا تدریس کیږی. زده کوونکی ئې د لیلیې په درس بوختدی.

د دغی مؤسسې یوی منبع وویل چی د زده کوونکو د استفادې لپاره کتابخانه، لابراتوار او سمعی او بصری وسایل هم شته دی.

یونسکو یوازی هغه علمی مؤسسه ده چی د دغه تعلیمی مؤسسې د پراختیا لپاره په افغانستان کی د پوهنی وزارت ته د تعلیمی موادو، لوازمو او درسی موادو د تهیې له لیاری مرسته کوی.

پدې مؤسسه کی د ۵۶۰ تنو شاملینو له جملې څخه ۵۵۴ تنه په کالنی ازموینه کی شامل او ۶ تنه محروم شوی دی.

ددې مؤسسې تر څنګ یو مسلکی کورس هم چی تعلیمی موده ئې یو کال ده تاسیس شوی دی.

مسلکی کورس: دوولسمه ټولګی د هغه فارغانو د پاره ده چی غواړی د معلمینو په حیث په ښوونځی کی تدریس وکړی.

پدې کورس کی چی اوس اووه ویشت تنه شامل دی د معلمی او اصولو تدریس اختصاصی مضامین دعالی دارالمعلمین د معلمینو او استادانو له خوا تدریس کیږی په عکس کی د اساسی دارالمعلمین د محینو شاګردانو د کالنی تحریری آزموینې یوه صحنه وینی.

* * * * * * * * * * * * * * * * * *

## د احمد شاه بابا په لیسه کښې



د احمد شاه بابا په لیسه کی د کالنی ازموینې یوه منظره

دا یو ځنی تعلیمی موسسه ده چی په کندهار کښې یې لومړی ځل لپاره ته ارتقا کړیده.

د احمد شاه بابا لیسه په ۱۳۱۷ کال کی تاسیس شوی او اوس ۱۳۵۰ تنه شاګردان لری.

د احمد شاه بابا د لیسې مدیر ښاغلی ګل محمد مشرقی وویل چی د الیسه ۲۳ ټانګی لری او زده کوونکی له اوم ټولګی څخه تر دوولسم ټولګی پوری په درس بوختدی.

د الیسه لابراتوار او کتابخانه هم لری چی زده کوونکی په رسمی وخت او پسله تعلیمی وخته له هغو څخه استفاده کوی.

د احمد شاه بابا په لیسه کی ۳۰ تنه معلمین شته سږ کال د احمد شاه بابا د لیسې ۱۷ دوره فارغان

ټولنې ته وړاندې کیږي ·

پدې آزموینه کې یوشمیر زده کوونکو د بیلو بیلو ولایاتو څخه دسامع په ډول پخوا د پوهنې د وزارت څخه د آزموینې د تیریدو امرونه اخستي دي هم شامل شوي وه ·

د ازموینې صحنه په ښه تو دوالي دوام کاوه ·

## دمیرویس نیکه په لیسه کښې

دمیرویس لیسې ته په ۱۳۳۱ کال کښې د لیسې درجه ورکړه شویده ·

څرنګه چې د هغې لیسې مدیر ښاغلي محمدانور صدیق زي وویل :

اوس پدې لیسه کې ۷۵۹ تنه زده کوونکي شامل دي خو په آزموینه کې ۶۷۳ تنه شامل شویدي ·

پدې لیسه کښې ۲۷ تنه معلمین د زده کوونکو د تعلیم او تدریس وظیفه پر غاړه لري چې سږ کال به د دوولسم ټولګي څخه ۵۳ تنه شاګردان فارغ شي ·

دالیسه چې د منزلباغ د خامه سړک پر څنګ واقع او ۱۸ څازګي لري د لیسې د مدیر په قول سږ کال د ازموینې نتیجه ښه ده ·



دمیرویس نیکه په لیسه کې د کالنۍ آزموینې یوه منظره

## دزرغونې انا په لیسه کې

دزرغونې انا لیسه د لوی احمدشاه بابا د مورد نامه په ویاړ یاده شوې او د کندهار د انجونو لومړنی لیسه ده چې په ۱۳۲۷ کال کې د ابتدائیې په ډول تاسیس شوې وروسته تر هغې چې څو دوري فارغ-التحصیلاني یې ټولنې ته وړاندې کړې دي په ۱۳۳۶ کال کې ني منځنۍ ښوونځي ته ارتقاء وکړه او په ۱۳۴۱ کال کې د لیسې درجه ورکړه شوه ·



دزرغونې په لیسه کې د کالنۍ ازموینې یوه برخه

د دغې لیسې مدیر ښاغلي محمدنبي [محمدي] د مرکې په ترڅ کې وویل پدې

لیسه کی ۵۸۰ تنه زده کوونکی په درس بوخت دی .

دلیسې څخه ابتدایي دوره یعنې دلومړی ټولګی څخه ترشپږمه پوری دابتدایی ازرغونی په نامه په ۱۳۴٦ کال کې جلا شوه او اوس دا لیسه ۱۵ ځانګی لري چې داوم څخه تر دوولسم ټولګی پوری ده .

ښاغلی (محمدی) زیاته کړه چې لیسه ۳۳ معلمانی او معلمین لري چې دلیسانس عالي دار المعلمین بکلوریا په سویه دی .

دې لیسې وروسته تردی چې لیسې ته ارتقا وکړه تراوسه یې پنځه دوری د دوولسم ټولګی فارغ التحصیلانی ټولنې ته وړاندی کړی دی چې د کندهار په بیلو بیلو ښوونځیو او ځانګو کې کار کوی سږ کال یې شپږمه دوره فارغ التحصیلانی په ټولنه کې دخدمت لپاره قدم ږدی .

# په مشرقي لیسه کښې



دمشرقي دلیسې زده کوونکی دازموینې په حال کې

دمشرقي ښوونځی د کندهار دښار لومړی ښوونځی دی چې په ۱۳۰۰ کال کی تأسیس شوی ده څو دوری دشپږم ټولګی زلمیان یې فارغ التحصیل کړی او ټولنې ته یې وړاندی کړیدی .

وروسته یې په ۴۴ کال کې متوسطې ته ارتقا وکړه او دری دوری دنهم ټولګی فارغ التحصیلان یې لیسو ته ولیږل .

دمشرقي لومړی ته په ۴۸ کال کې دلیسې درجه ورکړه شوه او اوس ۲۰۰۰ تنه زده کوونکی درس پکښې وائي .

ددغې لیسې مدیر ښاغلی محمد انور ایازی وویل چې دالیسه اوس ۸۰ ځانګی لري چې ۴۰ ځانګی یې دسهار او نوری یې د ماپښین له خوا په درس بوخت دی .

دلیسې د معلمینو شمیر ۳۳ تنو ته رسیږی چې ټوله د بکلوریا او عالی دار المعلمین په سویه دی ده وویل دمعلمینو دتدریس اصول دقناعت وړ دی .

دا لیسه دسپورټ مضمون هم لري او هلکان یې دسپورټ لوبو سره زیاته علاقه څرګندهوی خو د سپورټ میدان او نور وسایل تراوسه پوری نه لري او د احمد شاه بابا دلیسې دسپورټ له میدانو څخه استفاده کوی .

ښاغلی (ایازی) زیاته کړه دا ښوونځی دلیسې په سویه مجهز لابراتوار او کتابخانې ته ضرورت لري او هم موږ پدې هڅه کې یو چې دتدریس دوسایلو دغه نیمګړ تیاوی ژر ترژره پوره او دهلکانو داستفادې لپاره تیار شي .

په عکس کې تاسو دمشرقي دلیسه دشاګردانو دکالنۍ ازموینې یو ګوښه وینئ .

# په احمدشاهي منځنۍ ښوونځي کې

احمدشاهي منځنۍ ښوونځی په ۱۳۱۵ کې د ابتدائي په ډول تاسیس شوی او څو دورې د شپږم ټولګي فارغ التحصیلان یې ټولنې ته وړاندې کړي دي چې څینو یې په لیسو کې هم خپل درس ته دوام ورکړی دی.

وروسته بیا په ۱۳۴۶ کال کښې یې منځنۍ ښوونځي ته ارتقاء وکړه ښاغلی غلام محمد (احمدزی) د ښوونځي مرستیال یوې مرکې په ترڅ کې وویل اوس ۱۴۸۰ زده کړیالان پدې ښوونځي کې شامل دي چې د هغې جملې څخه ۱۳۷۵ تنو د سږ کال په کلنۍ آزموینه کښې ګډون کړیدی.



د احمدشاهي منځنۍ ښوونځي زده کوونکي د کالنۍ آزموینې په حال کې

ښاغلي غلام محمد زیاته کړه چې زموږ ښوونځي ۳۳ څانګې لري چې د سهار او ماپښین لخوا تدریس پکښې کیږي.

ده د اهم وویل: چې زموږ په ښوونځي کې برسیره پر نورو معلمانو ډیری پوهې او رسیده نجونې د معلمۍ ستره وظیفه اجرا کوي.

ښاغلي غلام محمد وویل زموږ د معلمینو او معلماتو شمیر ۳۸ تنو ته رسیږي چې ټوله د بکلوریا او عالي دارالمعلمین په سویه دي.

د دې ښوونځي د نهم ټولګي څخه په سږ کال ۸۰ تنه فارغ التحصیل شي.

په عکس کې تاسو د دغې ښوونځي یو شمیر شاګردان د کالنۍ تحریري آزموینې په حال کې وینئ

---

# د فاضل کندهاري په منځنۍ ښوونځي کې

زموږ خبریال د فاضل کندهاري د منځنۍ ښوونځي د کالنۍ آزموینې جریان له نږدې څخه کتلی او د یوې مرکې په ترڅ کې چې د ښوونځي د مرستیال سره ئې کړې ده لیکي چې د فاضل کندهاري په منځنۍ ښوونځي کې ۵۵۰ تنه هلکان شامل او د دغې جملې څخه ۵۰۰ تنه په آزموینه کې شامل او ۵۰ تنه نور ئې د غیر حاضرۍ او نورو علتو له کبله د آزموینې څخه محروم شول.

د فاضل کندهاري منځني ښوونځی ۱۳ ځانګې لري او زده کوونکو ته ۱۴ تنه معلمان تدريس کوي .

او هم ښوونځی يو سر معلم او يو مرستيال لري د ښوونځي مرستيال ښاغلی سلطان محمد (رحيمي) وويل چې د زده کوونکو تعليمي سويه د تير کال په نسبت ډيره ښه شوي ده د ښوونځي سر معلم ښاغلی

سيد عبد الغفار (رؤفي) و ويل چې د هلکانو د تعليمي سويې ښه والی د دوی د زحمت او د معلمينو د ښه تدريس نتيجه ده .

د لته تاسو پدې عکس کې د فاضل کندهاري د منځني ښوونځي د شاګردانو د کالني تحريري ازموينې يوه صحنه وينئ .



د فاضل کندهاري د منځني ښوونځي زده کوونکي د آزموينې په حال کې



د عينو د منځني ښوونځي زده کوونکي د آزموينې په حال کې

---

# د عينو په منځني ښوونځي کښې

د عينو ښوونځی چې په ۱۳۴۵ تعليمي کال کې د لومړۍ درجې څخه منځنۍ درجې ته لوړه شوي ده د کندهار د ارګ په ساحه کې واقع ده .

زموږ د مرکې په ترڅ کې چې د ښوونځي د محترمې معاونې ميرمن رقيه (فيض) سره وسوه دې ديوې پوښتنې په جواب کښې وويل :

دغې ښوونځي په تير تعليمي کال کې خپله لومړۍ دوره فارغ التحصيلانې و زرغونې انا ليسې ته د تحصيل د دوام لپاره ليږلي دي .

دغه رنګه نوموړی زیاته کړه چی اوس پدې ښوونځی کی ۸۶۳ تنه درس وایی چی دهغی جملی څخه ۸۴۰ تنه په ازموینی کی شاملی شوی دی.
دی د شاګردانو د آزموینی اخیستلو د طرز، د معلمانو پیش آمد او د نجونو تیاری څخه خوښی ښکاره کړه.
د ا ښوونځی شل ځانګی لری.

# دکندهار په میخانیکی ښوونځی کی



د میخانیکی ښوونځی دکلنی آزموینی یوه صحنه

د کندهار د میخانیکی ښوونځی کالنی آزموینی پای ته ورسیدی او نتایج ئی شاګردانو ته څرګند شول.

د میخانیکی ښوونځی مدیر ښاغلی محمد عظیم (ناصر) دهغه ښوونځی د ۱۳۴۹ تعلیمی کال د کالنی آزموینی نتیجی دهغه ښوونځی شاګردانو ته څرګند کړی.

ښاغلی (ناصر) وویل چی د کندهار میخانیکی ښوونځی ۲۸۲ زده کوونکی لری چی دهغو له جملی څخه ۲۶۹ تنه په آزموینه کی شامل او نور کسان محروم شوه.

ددغه جملی څخه ۱۹۸ تنه بریالی ۶۴ تنه مشروط، ۱۳ تنه محروم او ۷ تنه ناکام شوی دی.
ښاغلی ناصر دا هم وویل چی سږ کال له لسم ټولګی څخه ۵۹ تنه هلکان فارغ شوی دی.
په پورتنی عکس کی د میخانیکی ښوونځی د کالنی آزموینی یوه صحنه لیدل کیږی.

همدا رنګه د کندهار په ۴۹ لومړیو او ۸۶ کلیوالی ښوونځیو کی آزموینه په ډیر منظم ډول د تودوالی په حال کی جریان درلود.
همدا رنګه د پوهنی یوې منبع د کندهار د پوهنی دعمومی بڼی د څرګندولو په هکله وویل!
په تیرو ۴۹ کلونو کی ۲۵۰۰۰ تنه او په هر کال کی نژدې ۴۶۰ تنه زده کوونکی د پوهنی د زده کوونکو په شمیر باندی زیات شویدی.
په کندهار کی د پوهنی یوې منبع وویل چی په کندهار کی د پوهنی بنسټ په ۱۳۰۰ کال کښیښودل شو او هغه وخت یو ښوونځی د تجارت د ښوونځی په نامه په کندهار کی تاسیس شوه.

منبع داهم وویل چې دغې [ښوونځی هغه وخت ۴۰۰ تنه شاګردان درلوده اود مرحوم مولوی صالح محمد له خوا اداره کیده .

منبع څرګندونه کړه چې ددغې ښوونځی د جوړیدو نه وروسته چې اوس د مشرقی دلیسی په نامه یادیږی او په تیر تعلیمی کال کښې

له متوسطه څخه لیسې ته جګه شوه دوه نور لومړنی ښوونځی [ د بردرانی ښوونځی] او د [کنج ښوونځی] په نامه دکندهار په ښار کښې یوه په بل پسې تاسیس شوه .

منبع دیوې مرکې په ترځ کی وویل تر ۱۳۰۰ کال دمخه په کندهار کی په رسمی توګه کومه ښوونځی او تعلیمی مؤسسه نه وه موجوده .

د ۴۹ کلونو په تیریدو سره د کندهار په پوهنه کی له یوی خوا د کمیت او د بلې خوا

د کیفیت په لحاظ ډیر مهم تغیر منځ ته راغی چې دهغه په اساس یولړلومړنی ښوونځی، لومړی د ښار په حوزو کی او وروسته د کندهار په مربوطاتو کی تاسیس شولی اود کلونو په تیریدو سره دغه ښوونځیو له لومړنی سویې څخه د متوسطې او بیا دلیسې په درجه ارتقا وکړه .

اوس په کندهار کی څلور لیسې ۹ متوسطې ۳۹ لومړنی ښوونځی او ۸۶ کلیوالی ښوونځی شته چې ټول ۲۵۰۰۰ تنه هلکان او نجونی په درس ویلو بوخت دی.

د ۱۳۴۸ او ۱۳۴۹ تعلیمی کال په موده کښې د کندهار د پوهنې په چوکاټ کی درې لیسې نوی جوړې او (۱۲) لومړنی ښو ونځی د متوسطې په درجه ارتقا کوی او همشپږ لومړنی ښوونځی شپږ کیلوالی ښوونځی نوی جوړ یږی.

په آخر کی منبع وویل سږ کال د کندهار د ولایت د مربوطه لیسو څخه ۲۲۴ تنه فارغ التحصیلان د پوهنځی جامعې ته ورڅاندی شوه .

* * * * * * * * * * * * * * * * *

## فلسفی درس

یو شاګرد وویل کله چې موږ زده کونکو لومړی کال د فلسفې په ویلو شروع وکړه نو موږ او زموږ استاد دواړه د فلسفې مطلبو نه ښه ترا درک کړای شوای او پوهیدو په دوهم کال کی یوازی زموږ استاد پوهیدی نه موږ مګر په دریم کال کی نه زموږ استاد پوهیدی او نه موږ [د نیا دی ژباړه .



د زرغونې لیسې زده کړیانې د لابراتوار په خانګه کی د لوست په حال کی لیدل کیږی.

طاقت د جهان د هغه لوی توان او قدرت څخه ځان خلاص کی چی هغو د کړي ولسونو پراکثریت باندی حکمرانی کول او پدي ولسونو کی داسی لا هم وه چی د نفوسو د تعداد په مقایسه ترموږ شل چنده بلکی ډیر بالاوه خو دوی نسوای کولای چی د اروپا ددې استعماري دولت په مقابله راو پاڅیږی په هغه وخت کی یوازې همدا افغان ولس و چی دا کار ئې وکی .

۵۲ کاله د مخه چی موږ خپل دا طبعی حق چی د څه وخت د پاره مو د لاسه وتلی و بیر ته تر لاسه کاوه زموږ جنگی او دفاعی وسائل د استعمارگر انگلیس و جنگی وسایلو ته د تش لاس حکم درلود، خو موږ د خپل ملی قدرت او اتحاد او شهامت او مړ دانگی په زور هغه کار وکی چی برزړه ور توب او مېړانه مو هغه وخت ډیرو آزادی خوښوونکو ولسونو د اروپا نی ځینو ولسونو په شمول د آزادین لاسونه پورته کړه.

او زموږ دا کار نه یوازی دا چی هیڅ نی د خپلو اکی ښتنان کړو بلکی دا هغه درس و چی د ایشیا اکثرو ولسونو ته مو ورشروع کړ او د زمانی په مرور سره ئې د جهان ډیرو برخو ته هم سرایت وکی همدا دی چی اوس شلمه پیړیه کی د جهان ولسونو یو په بل پسی د آزادی ته ورسېدل او اوس چی هغه د جهانی لوی قوت ښتن انگلیس او د نړۍ څو نور استعمارگر دولتونه د ځانو سره حساب وکی نو هغه خپله چاردیوالی به ورپاته وی کومه چی د نړۍ په جغرافیه کی یوازی: دوی په خپلو نوموثبت ده .

موږ نن ددې نیکمرغی لوی ورځی د تلین په ترڅ کی هغوی خپلو سرتیرو نیکه گانو ته چی ددې گران افغانستان د پاره ئی د سر - بازی په ډگر و کی گټون کړی او خپلی وینی ئی توی کړی دی د احترام او درناوی په نیت سرټیټوو او د هغه جهان د لوی دربار څخه ورته غوښتنه ورته کوو .

## دکتور سوکارنو وفات شو

د اندونیزیا پخوانی جمهور رئیس دکتور سوکارنو چی د اندونیزیا د آزادی له قهرمانانو او د نړۍ له لوی شخصیت و د جون په ۲۰ نیټه د شپی وفات شو .

دی چی نه شپیته کلن و په دی وخت کی د هغی ناروغی په اثر چی د وینی دزبات فشار او د پښتورگو د فعالیت نقصان په نسبت ورپیښه شوی وه د جاکارتا په یوه روغتون کی بستری شوی و .



مرحوم دکتور عبدالرحیم سوکارنو

دکتور سوکارنو پوره دوه ویشت کاله د هغه هیواد د جمهور رئیس په حیث وظیفه اجرا کړیده

له ۱۹۶۷ کال نه راپدې خوا چی خپل ټول اختیارات ئې د هغه هیواد اوسنی رژیم ته چی مشر ئې جنرال سوهارتو دی و سپارل جاکارتا ته نږدې په خپل استوگنځی کښی اوسید .



د خپلواکۍ څلی